| | |
|---|---|
| برنج ؛ عدس ، باقلاو سبزیجات سبز و همچنان زردی تخم وخمیره یافت میشود . | |
| ۱۰ ویتامین ( ب۲ ) : عبارت از مجموعهٔ ویتامین هائیست که هنوز درقید بحث میباشند وبطورمرجح یکی از آنها همان حامض نیکوتین یا نیکوتینامین است و مخصوصاً در گوشت ها وگرده وشیر وسبزیجات سبز وخمیره یافت میشود. | مرض بلا گرا |
| ۱۱ - ویتامین (ج) : در سبزیجات تازه غیر مطبوخ ازقبیل کرم، کاهو، پیاز ،سبزی پالك، بانجان رومی، آب بانجان رومی، آب لیمو ، راوند، شلغم ومیوه جات یافت میشود ودر مواد حیوانی غیر ازشیر موجود نمیباشد . | مرض اسکربوط - آلام وورم درمفاصل نقصان دروزن جسم، تعب ، فقدان اشتهاء، تغیر رنگ سیما وزردشدن آن، زیادشدن قابلیت بمقابل میکروب های امراض ساریه وشاید بارو ماتیزم وقرحهٔ معده واثنی عشری هم ارتباطی داشته باشد. |
| ۱۲ - ویتامین (د) : مخصوصاً در مواد غذائیهٔ که دارای ویتامین ( ۱ ) میباشند یافت میشود وجسم هم میتواند در داخل خود آنرا زیر تاثیر روشنی آفتاب یااشعهٔ مصنوعی ماورای بنفش تهیه نماید . | برای امتصاص کلسیوم وفوسفور درامعاء و تمثیل آنها در جسم برای جلوگیری از مرض رشیتیزم در اطفال و نرم شدن استخوانها در کلانها لازم است . |
| ۱۳ - ویتامین ( ك ) : | هبوط مادهٔ تخثر درخون که ممکن است منتج به قابلیت نزف الدم واستمرار آن موقع حدوث آن گردد. |
| ۱٤ - عامل داخلی که مخصوصاً درمعده یافت شده وبعد از آن درکبد بعد از تفاعل آن باعامل خارجی غذا ذخیره میشود . | مرض انیمیای خبیث |
| ۱۵ - عامل خارجی که عادتاً دراغذیهٔ که شامل ویتامین (ب۲)میباشند یافت میشود. | مرض انیمیای دارای خلایای بزرگ |

با آنکه درین جدول خویش از ویتامین ( ه ) یا (E) و (ف) یا (F) که تا کنون وجود کدام رابطهٔ بین آنها وانسان ثابت نشده است وهمچنان بسیاری ازمواد معدنیه واملاح دیگر ازقبیل سودیوم وپوتاسیوم ومگنزیوم و منگا نیز و کلوروغیره را که برای ترکیب

مایعات و انسجهٔ مختلفه جسم لازم هستند ذکر نکردیم، اما همین مختصری را هم که از ان معلومات دادیم برای توضیح علاقهٔ غذای انسان به وقایه و حفظ الصحه اش کافی خواهد بود . چنانچه ازروی همین مختصر نیز فهمیده میتوانیم که لااقل درحدود ( ٦٠ ) امراض و اعراض است که دارای رابطهٔ مستقیم به تغذیهٔ ناقص میباشند ، وازمهمترین این امراض واعراض طوریکه پیشتر ملاحظه کردیم یکی ( تاثر نموی جسمی ) بواسطهٔ فقدان مواد پروتینیه که با اسیدهای امینیك وبعضی ویتامین ها مشحون باشند درغذا است که این امر با لخاصه دردورهٔ طفولیت و جوانی دارای اهمیت زیادی است . و دیگر ( زیاد شدن قابلیت بمقابل جراثیم امراض ) است که هردوی اینها بصفت غیر مستقیم مؤدی بیك سلسله امراض دیگری میشوند، و میتوان قوای مفکره را که در اثر سوء تغذیه متأثر میشود نیز به اینها علاوه کرد .

باری ازملاحظهٔ این حقایقی که ذریعه تجارب زیادی صحت آنها ثابت گردیده و علاوتاً بسیاری از این امراضیکه ذکر یافت فقط ذریعهٔ اصلاح غذا و بی‌اینکه هیچیك دوائی استعمال شده باشد شفایاب گردیده اند میتوان به این نتیجه رسید، ونظر خوانندگان محترم را بمواد واقیه ملتفت ومواد غذائی را به دوقسمت مهم و رئیسی جدا نمائیم :

۱ ـ اغذیهٔ واقیه : که برای نمو وتجدید حجیرات و انسجهٔ مختلفهٔ جسم لازم بوده وبایست در غذای یومی انسان موجود باشند . این اغذیه هم مخصوصاً به گوشت ها گرده ، جگر ، ماهی ها وروغن های آن ، شیر و مرکبات آن مثل پنیر و مسکه ، تخم مرغ ، سبزیجات سبز تازه و مطبوخ ومیوه جات منحصر میبا شند که با کمال تأسف ازحیث قیمت گران تمام میشوند وبه همه اشخاص به آسانی میسر شده نمیتوانند .

۲ ـ **اغذیهٔ طاقت :** که نشاط وقدرت وتوانائی به کارهای جسمانی وحرارت بدنیه تولید می‌نمایند.

ومهم‌ترین آ نها حبوبات مثل گندم وباقلا وجواری ومشنگ وبرنج ومنتجات آنها مثل آرد ونان است ومیتوان آنهارا بمحصولات عادی زمین تسمیه نمود . اینها ارزان ترین اغذیه است وبهمین لحاظ درتمام ملل غذای رئیسی ومهم فقرا است، ولی اینها به تنهائی برای محافظت صحت انسان کافی نمیباشند چنانچه سوء تغذیه هم طوریکه پیشتر ذکر یافت دربین همین طبقاتیکه غذایشان منحصر به مواد فوق الذکر میباشند بیشتر موجود میباشد .

مطالعات خویش‌را درموضوع غذاوصحت ازروی اسنادومأخذ موثق وجدیدیکه در دست بود بهمین جا خاتمه داده وامید واریم بهاین موضوع مهم وحیاتی که درنزد اکثریهٔ افراد محیط ما

تقریباً بیگانه میباشدروشنی کافی انداخته باشیم ودر پایان این مبحث شاید بیمورد نباشدا گر بمسئله غذا ازنقطهٔنگاه محیط خویش هم یکنظر اجمالی بیندازیم :

علاقهٔ نزدیکی که غذابصحت داشته ومعلومات فوق مؤید آن است نزد اکثریهٔ افراد ما تقریباً مجهول بوده وشاید عدهٔ معدودی ازمنور ترین ومستعد ترین طبقات وطن ما یافت شده بتوانند که بغذای خویش ازوجهه صحی ومطابق دستورات حفظ الصحه اهتمام ورزیده وخوراك خو درا ازحیث حاوی بودن مواد لازمهٔ حیاتی آن تهیه وآماده نمایند نه ازحیث رنگ ومزه .

ما تا کنون بغذا فقط ازرهگذر اینکه سدجوع مارا نموده ومنتها به ذایقه مطبوع وگوارا باشد نظر کرده وهمیشه درتجسس خوراك هائی بوده ایم که مطابق خواهش وآرزوی نفسی ما بوده نه موافق احتیاج وجود وسلامت بدنی ما ... بهمین نسبت اغذیهٔ ما اکثریاً از حیث طعم ومزه ورنگ بسیار جالب بوده اما از نقطهٔ غذائیت و حاوی بودن مواد ما به الاحتیا ج وجودخیلی ها فقیر میباشند . برای اینکه خوراك های ما طعم بهتری داشته ورنگ جذاب تری به آنها داده باشیم اکثریاً مواد حیاتی آنهارا سوختانده وتلف کرده واز صفات غذائی ایشا ن فیصدی هشتاد میکاهیم. گوشت ها ازهر قبیل که باشند همینکه بدست آشپز ما پخته شد در اثر جوش دادن زیاد یا بریان کردن فیصدی نود خاصیت خود راازدست میدهد سبزیجات رادرحین جوش دادن وبعد سرخ کردن دربین روغن خراب ساخته ومواد غذائی شان راتلف میسازیم. برنج های صاف کرده وبریان شده وروغندار جزاینکه معده را پر نمایند بوجود کمتر فایده رسا نده میتو انند . شیر مسکه، ماست پنیر خوب بسیار کم وبه ندرت درخوراك های ما دخیل هستند . وبا اینکه محیط ماالله الحمد ازحیث وفرت نعمت، آفتاب خوب، هوای صاف ومحیط سالم بازهم به بسیار قطعات جهان رجحان وبرتری بارزی دارد حالت سوء تغذی بالخاصه درطبقات پائین زیاد ترموجود بوده واگر احصائیه گرفته شود شاید رقم درشتی رادر تمام مملکت تشکیل دهد واگر آفتاب، هوا، آب میوه جات فراوان ما که کمابیش دردسترس هرغنی وفقیر میبا شند نمی بود شاید وضعیت سوء تغذیه که عامل اول آن عدم معلومات ما به این موضوع وثانوی تااندازهٔ هم قلت مواداو لیهٔ غذائی ازقبیل شیر ومسکه وتخم مرغ وامثال آن است دربین محیط بیش ازهر محیط دیگری موجود می بود .
وبازهم اگر مقامات مسئول از حالا درصدد چاره جوئی نبرایند وازیك طرف فکر عامه رادرین قسمت تنویر نه فرمایند وازطرف دیگر ازگران شدن وقلت یافتن مواد مهمهٔ غذائی بو سایل ممکنه جلو گیری نفرمایند شاید پسانها وضعیت ازین ناحیه و خیم ترشده برود. من بسهم خود درین زمینه اشارهٔ مختصری کرده وتکمیل آنرا به ارباب فن ومسلك میگذارم .

# دپښتو پرملي افسانو یوه کتنه :

داافسانې اهمیت په‌تربیه کښې،دافسانې اهمیت په‌تاریخ کښې-
افسانې اوپښتو ادب- زمونږملي‌افسانې دادب له کورنۍ څخه‌دي
یا د تاریخ غړی ګڼلی کیږی-زمونږ دملي افسانواقسام- افسانه او
محیط - زمونږ دملي افسانو خصوصیات او ممیزات .

## عمومي ممیزات

ښاغلي محمد ګل « نوري »

### د افسانې اهمیت په تربیه کښې :

افسانې او قصې پوهان دجمیله فنونو څخه ګڼي - پخوانو خلکو دالوړ اومهم فن دتربیې دپاره یو لازمي شی ګاڼه، اوهمدا افسانې پخوانو پوهانو دکوچنیانو دتعلیم او تهذیب دپاره یوه ډېره ښه او مفیده وسیله ګڼله ،اودوی به‌خپلو کوچنیانو ته‌ادب اوتاریخ اودوطن‌مینه اوشجاعت او ایثار په‌خپلو قصو کښې ورښوول او په‌خپلو قصو کښې به‌ئې دوی‌ته دمروت او تهذیب درس ورکاوه .



ښاغلی محمد ګل نوري

اغریقیانو به‌خپلو کوچنیانو ته‌دخپل مشهور ادیب «هومر» قصیدې اورولې،افلاطون‌ددې مقصد دپاره په‌خپل جمهوریت کښې یوخاص ځای جوړ کړی و ، اوپه دغه مخصوص ځای کښې به‌ئې دخپل عصر دقصو او افسانو پر آد ابو پخشونه کول،

نن ورځ په ځینوملکو کښې شاعران اوادبا په قهوه خانو کښې دخپل محیط اوعصر دپیاوړو قصې خلکو ته کوی،او خلک‌ئې په‌ډېره توجه اوښه شان سره اوروی ادبا د خلکو عواطف په قصو سره د خپل مقصدوخواته را اړوی، دامریکې او اروپا خلکوهم دې فن ته پوره اهمیت ورکړی دی،اوپه‌دې فن کښې‌ئې ډېر تالیفات او پلټنې کړې‌دي -

کسیکه آسمان سعادت را در وجود خویش نمی بیند یا ایدن آن در تمام گیتی بی فائده است. «اتولودویك»

هر کله چه دافن په تعلیم او تربیه کښې خصوصاً د کوچنیانو په روزنه کښې ډېره اغېزه او لوی اثرلری، نو ځینې ابتدایی قامونه په تربیه کښې قصو ته پوره اهمیت او لوړ مقام ور کوی هر کله چه کوچنیانو فطرتاً دقصو او جغرافیائی حکایاتو سره ډېره مینه لری، نو هغه پلرونه او استاذان چه خپل کوچنیان او شاگردان دقصو او افسانو داروېدلو څخه منع کوی، دوی گوا پر هغو ظلم کوی، او هغه دخپل فطری حق څخه منع کوی.

هر کله چه قصې او افسانې د کوچنیانو دخوشحالۍ دپاره یوه ښه وسیله ده او ددوی په دغه ذریعه تعلیم او تربیې او زده کړې ته مینې پیدا کیږی، او دقصو او نکلو په اروېد او ددوی په فکرو او دماغو کښې ډېر افکار او الفاظ او عبارتونه ځای نیسی، او بې زیاره او بېله کوښښه ددوی په ذهن کښې ډېر مفید معلومات ذخیره کیږی، او په دې ذریعه ئې ژر په فکر او ذهن کښې معلومات ځای نیسی، نو له هم دې کبله دوی فطرتاً ددې شیانو وارو ېدو ته مینه او شوق لری.

دا معلومه خبره ده چه د درس عادی کتابونه او الفاظ او مطالب ددوی په فکرو کښې یو بې فائدې او وچ شی ښکاریږی، او دقصو او افسانو الفاظ او مطالب ددوی په فکرو کښې دیوه ژوندی متحرك شی په شان ځای نیسی، او دهغو معلوماتو په سیوری کښې ددوی پوهه او معلومات زیاتیږی همدا سبب دی چه ځینو ممالکو ددې فن دپاره لویې لویې موسسې ودانی کړی دی، او په دغه مو سسو کښې دقصو په قالب کښې خپلو کوچنیانو ته تاریخی، جغرافیایی حقایق او شخصی آداب او نور علوم ور زده کوی.

بر سیره پر دې افسانې ځانته پخپل پوره اهمیت او لوړ قیمت لری، ځکه چه افسانه د جمیله فنونو هغه ښکلی برخه ده چه د کوچنیانو او لویانو د تولو د زړه تسلي پری کیږی. افسانه ده چه اروېدونکی ته خوند او مزه ور کوی؛ دقصې په اروېدلو سره د سړی روح مهذب او صفا کیږی او د جمال حاسه تغذیه په پیدا کوی. افسانه د کوچنیانو څخه د درس ستومانتیا لیری کوی او نوی درس ته ئې مینه او شوق پیدا کوی، افسانه د کوچنیانو عقلی او جسمی قوه نوی درس ته چمتو کوی. افسانه متعلم ته دایثار، صدق، اخلاص درس ور کوی.

افسانه په شاگرد کښې ارادی قوه پیدا کوی؛ افسانه یو داسی قالب دی چه په دې کښې ډېر علمی او جغرافیایی او نور ډېر ډېر حقایق په ډېره اسانتیا سره ځای شوی دی.

افسانې د یو ملت د ژبې د نثر او ادب مهم غړی او رکن دی او د ملی افسانو څخه د هغه ملت اصلی او قدیمی ادبیات او ځینې تاریخی احوالات او نور خصوصیات لکه عاشقانه احساسات، حماسیات، زړور توب، مړانه، سخا، عفت، ناموس داری، ساده والی، اجتماعی ژوندون او نوری اخلاقی ښېگڼې معلوموی. افسانې دی چه دخپل ملت پخوانی ادبیات پخپل زړه کښې بېله کم تغیره څخه ساتی تر هغه وخته چه عربو په اندلس کښې فتوحات کول، د فرانسه شاعری هم لکه د نورو غربی اقوامو په شان بې خونده وه، بلکه دوی هیڅ ادب نه درلود، دونه قدرو چه په لاتینی قصو کښې ددوی شعر او ادب محصور وو، چه دغه قصې به ځینې پادریانو په خپلو کلیساگانو کښې کولې.

راه حیات ما کوتاه است . بگذارید بالای آن گلهای مسرت بپاشیم . «هردر»

## دافسانې اهمیت په تاریخ کښې :

په لمړي سر کښې تاریخ هغه قصې او نکلونه بلل کېده چه نکلچیانو به اروېدل او نو تول به ئې . نو هغه قصې او نکلونه چه ددوی به خوښ شول اود ټولو وګړو پر خوا به ښه لګېدل، هغه به ئې غوره او انتخابول، داافسانې او نکلونه به ا کثره دربـ النوعو او پیاوړو په باره کښې و، دې نکلو اوقصو په یونانیانو کښې دغزلو او اشعارو اوبدلورنګـ درلود او ددوی نکلچیا نو به دبدلی اوغزلی پرسر او وزن ویلی، او همدا افسانی دیونانیانو دمجد اوبرم او عظمت په نسبت یادغم اوزحمت له کبله چه په جګړو اوجنګو کښې ددوی پر جنګیالیو او پیاوړو باندی تېر شوی وویلی کېدې، همداسی لمړی تاریخی اثر چه په شعری قالب کښې او بدلی دی، د« هومیروس »اشعا ردی .

همدغه رنګه په هغه ملتو کښې چه دوی دمدنیت څخه پوره برخه نه درلوده، همداسی پور تنی اثرات یعنی قصصی تاریخونه چه نکلچیانو .به ئې دخپل ملت دپیاوړو په باره کښې دنکل پر ډول بیان کاوه موجودوه، لکه چه همداسی اثرات دعربو دجاهلیت دوخت اودتر کانو دهغه وخت چه دوی لاپرسماوی ادیانو نه وه معتقد شوی اوداسی ځینې د نورو ملتو دا لیدل کېږی ، په داسی ډول تاریخو کښې اخباری او اساطیری جنبه ډېره لیدل کیده، ځکه چه دهغه چا اهمیت چه قصه به ځنی کېدله فقط د نکلچی دعینکو څخه ښکا رېدی له همدې لامله هغه شیان چه ددوی زړه به ئې نرم کاوه غوره کول، او هرڅه چه به ئې زړه غوښت باندی زیاتول، اوخه به ئې زړه وغوښت چه کم ئې کړی په خپل فکر به ئې کمول ، لکه هومیروس چه دخپلورب النوعو اوپیاوړو په باره کښې چه زړه به ئې وغوښت هغسی نسبت ئې ورته کاوه، بلکه په دوی پوری به ئې داسی معتقد به کارونه اواعمال تړل چه هیڅ عقل ئې نه منی اونه هوښیار تصدیق پر کولای شی، یعنی انسا ن نشوا ی کولای چه دابیله یو وهمی خیال څخه بل شی وبولی، یادی ودی ته دحقیقی قیمت قائل شی .

لمړی سړی چه په تاریخ کښې ئې زحمت کښلی او دحقیقت دلا ری په پیدا کېدو کښې ئې زیارایستلی دی «هیرودوتس» وچه ده به په اخبار او تاریخی موادو پسی پخپله سفر کاوه زیا ت پر دې چه ده به دهغو ځایو چه دی به ورتلی په جغرافیائی حالاتو کښې مطالعه کوله ډول ډول نکلونه او افسانې اواثرات به ئې ټولول. او راوړل به ئې په یوه جمعیت کښې به ئې ایښوول ؛هغه شیان چه ددوی په خیال به معقول اوښه ورغله هغه به ئې غوره کول، هیرودوتس پوراوی سړی و چه داسی نکلونه اوروایات به ئې ټولول چه دده به خوښ اودده په نظر کښې به ئې ډېر قیمت درلود، اوهم به ئې عامو وګړو په اروېدو سره خونداخیستی، ګواکی دی په واقع کښې دقصصی مورخینو پلارو .

## افسانې او پښتو ادب :

زمونږ ملی زوړ ادب اوشعر وشاعری زمونږ افسانو په خپلو زړو کښې راساتلی دی ، یا په بل عبارت

افسانې دي چه د خپل محیط او ملت خصوصیات او اخلاقي ښېگڼې، لکه مړانه، عفت، دیانت، شجاعت عدل، انصاف، اتفاق، ورور گلوي، غیرت، او پاک عشق او ساده او بې ریا اوبې الا یشه مینتوب چه د تاریخ څخه پټ پاته شوي دي وراتلو نکو زمنوته اوڅاروي اوور ښیي ئې. یعنې د یو ه ملت اخلاقي او غریزوي هنداره ملي قصې او افسانې دي .

او س د لته په مطلب شروع کوم؛ د پښتانه د ملت د هغو قصو نمونه تر هغه اندازې چه زما په وس کیږي او زما معلومات مرسته راسره کوي لیکم :

زمونږ ملي افسانې اونکلونه اکثره د پخوانیو زمانو او پیړیو څخه راپاته شوي دي چه لږ دې جملې څخه یو ه د طالب جان یعنې ملاعباس او گل بشرې افسانه ده، بله د جلات او شمایلې، او د موسی خان او ولیجان و گلمکۍ افسانه ، بله د فتح خان او رابیا افسانه او نوری دي چه تر ننه پوري مونږ د دې افسانو په صحیح تاریخ سره نه یو کامیاب شوي چه په کم وخت او کمه زمانه کښې وې؟ که څه هم د دغو افسانو، له رویه څر گندیږي چه داافسانې تر اسلام وروسته دي ، منگر سره له دې مونږ پردې یقین نشو کولای څکه چه پر افسانو باندې محیط، مذهب، زمانه پوره اغیزه کوي ، او ځینې مواد او نومونه ئې اړوي؛ د جلات خان او شمایلې په قصه کښې د خونکار او مسلم باچا نومونه یاد شوي دي چه په بلخ کښې وه ، او د موسی جان وولیجان په نکل کښې د سهیل باچا نوم ذکر شوي دي چه دې پهلوا نانو جنگ ورسره کاوه ، منگر د سهیل او خونکار او مسلم په نومو سره باچهان تر اسلام ورو سته مونږ ته تاریخ نه دی راښوولی، مثلاً د فتح خان قصه ده وایي چه فتح خان د قلعهٔ بست او دا سلم خان باچا زوی و او د نقل دیوې ودو ناروڅخه څرگندیږي چه فتح خان پرېڅې پښتون و، د فتح خان مور وایي :

اوردي وسی د پرېڅو په سپین زیرو
مرورئې پخلانه کې لاد لاسه ور ښیي پاغي ملکونه

فتح خان وایي :

هندوستان مې د مچیو گربیني دي
هر څو که ئې وهمه نه خلاصیږي د شپیتو پرېڅو ورځ په ورځ کمې دي

نکلچیان او راویان متفقاً وایي چه فتح خان او دده ملگري ټوله پرېڅي وه ، پرېڅي اوس هم داوسنې افغانستان د هلمند درود پرغاړه او قلعهٔ بست او بند تیمور اوښو راوك کښې اوسیږي او په هندوستان کښې یو ښار هم د دې قوم په نامه « بهرایچ » شته او د دوی په عصر کښې د قلعهٔ بست ښار آباد او منظم ښار وو، او قلعهٔ بست د اسلم خان باچاپای تخت او مرکز و ، د دغه ځایه څخه شپیته تنه پرېڅي د فتح خان په مشرتوب او د کرمخان او پردل خان او زرداد خان په معاونت د هند د فتح د پاره تللي او د شمس الدین باچاسره ئې جنگونه کړي او هلته ټول شهیدان شوي دي ، منگر د بلې خواداده چه تاریخ نه د مخه تر اسلام نه وروسته تر اسلام د اسلم خان باچا په نامه په بست کښې یو باچاښوولی دی

بایست درمنزلگهٔ زمین مهمان متبسم وخندان باشیم . «لوهمیر»

اونه‌ئی دفتح خان اودده دملگرونوم اخیستی دی، اودشمس الدین په‌وخت کښې هم قلعهٔ بست وران و نومعلومه ده چه‌داسلم خان باچهی دطوائف الملوکی په‌زمانه کښې چه دمخه تر اسلام یا داسلام په لمړی‌قرن کښې‌وه .

داسلامی دائرة المعارف په‌اول جلدپه ۸۰۵ مخ کښې دبست کیفیت په دې‌خبر لیکلی دی چه: دبست‌دښاوخواخاورو او کنډوالوڅخه‌معلومیږی چه‌بست یوزوړ دمدنیت مرکزوو ، اوپه پخوا‌ئیږیو کښې ئې خورا شهرت اولوړ والی درلود، دعیسوی شپږم‌قرن په‌اول کښې‌بست‌هفتالیانو «هفتالیت ها» یاهیا طله‌و ونیو، بیاددوی څخه نوشیروان‌واخیست(۱) داسلام په زمانه کښې لمړی وار بست عبدالرحمن بن ثموره فتح کړی، بیایعقوب لیث‌دصفاری کورنۍ مؤسس دخپلو جنگو په‌وخت کښې یو کال یکښې تېر کړ ، اوپه(۲۶۶ه‌۹۷۶) کښې‌سبکتگین فتح کړ .

څنگه چه علاؤالدین جها نسوز دغزنوی‌کورنۍ‌سلطنت وران کړی، بست‌هم‌څه‌ورسره وران شو اود۸ هجری قرن‌په‌پای کښې دبست‌پاته برخه تیمور ورانه کړه ، اوپه (۱۷۳۸) دبست‌قلعه نادر افشارپسی ړنگه کړه . ددې‌پورته بیان څخه ښه‌ترامعلومیږی چه‌دانکل ېېخی زوړ دی .

هلبرانټ وایی چه په ریگک وېد کښې راغلی دی چه په ارا کوشیا کښې « قندهار » یوه قبیله وه‌چه‌«واسودیوا» نامی باچهی پرکوله ، اودی قبیلې ددغه باچادزوی «سو داس» نامی ترمشر توب لاندی دفتوحاتو لمن تراندس د سیند پوری ارته کړی وه ، اودسو داس جنگی کار نامی دنکل اوافسانې‌په‌دول‌ویلی کېدلی ـدریگک ویدپه‌زمانه کښې‌لاچندا نی وگړی دخط اولیکلو سره اشنانه‌وه ، څه واقعات چه‌وه ټوله‌دنکل اوافسانی په‌جامه کښې نغښتی کېدل نوښایی چه‌د انکل دی دهغو وختو وی ، اوپادی هغه سوداس‌وی اونومونه‌دی دمذهب اواسلام په اثراوښتی وی. ځکه چه‌عرب اودعربو لغات‌چه‌هر ځای‌ته ننوتلی دی دهغه ځای پر اد بیا تو ئې اغیزه کړې‌ده‌او اکثره‌نومونه‌ئې‌دعربی لغاتو په‌جامه ننوتلی‌دی

یوه بله‌خبره هم‌شته، هغه‌داده چه‌ودی شی چه‌همدغه‌نکل دی عینا همد غسی‌وی لکه چه دی یعنی‌دغه فتح‌خان‌دی وی اودشمس الداین‌سره‌دی‌دشپېتو کسوپه کومك جنگ کړی وی ، منګر دبریخو دمشرتوب په‌عنوان نه‌دباچادزوی په‌عنوان، ځکه چه داسی ډیر پېښ شوی دی چه دیوه بسته قوم خان ولاړشوي وی اوپربل قوم‌اووطن ئې‌برغل ورووړی وی، لکه‌صاحب‌جان، رووخان نورزی، داسی واقعات ډیر شوی دی اوتاریخ‌نه‌دی نیولی ، داسی واقعا ت د افسانو په‌جامه کښې نغښتی دی بل‌داچه ا کثره راویان اونکلچیان دنکل په‌شروع کښې وایی چه‌یوباچاو، که باچاوی که‌نه‌وی، اودوی هم‌وایی چه‌پخواهرخان دخپل قوم‌باچابلل‌کیدی، اولویی کلاوی‌به‌ئې‌در اودې .

---

(۱)اوس‌هم دکشکنخودسره‌دزاړه ښارکنډه والی شته ، ماچه دهغه ځای دسپین زیر وڅخه ددغو کنډوالو پوښتنه کړی‌ده چه‌دادکم‌وخت اوکم ښارو؟دوی وایی‌چه دادنوشیروان پای‌تخت‌و اوداښارنو شیران جوړ کړی‌دی . «نوری»

په هر صورت زمونږ مطلب دادی چه زمونږ ځینې افسانې زړې دی چندا نې تاریخ او زمانه ئې نه ده معلومه او ځینو افسانو تاریخ او زمانه څه نه څه معلومه ده، مثلاً لکه دادم خان اودرخانۍ افسانه، خویشکیاراوشاترینۍ افسانه، قطب خان اونازواودلی وشهو افسانې چه داخلور واړه افسانې دجلال الدین محمدا کبرمغولی (۹۵۰ هـ تر ۱۰۱٤) په باچهی کښې وې، یعنې ددی تولو پهلوانانو افسانې اودوی ژوند په یقینی ډول سره تر زرم هجری کال دمخه اوتر (۹۵۰) وروسته یقینی دی ځکه چه ددوی په قصو او نارو کښې دېر ځله دا کبر باچا نوم یادیږی، اودغه وخت دحکومت صوبه دارچه د کابل حاکم اومحسن خان نو میدد ادم خان په افسانه کښې یادشوی دی، اومحسن خان حقیقتاً دمغلو دامپراطورۍ له خوا دکابل حاکم وو (۱)

څرنګه چه ادم خان په پهلوانی او جنګیالی توب اودرباب په وهلو سره مشهور وو، نو ځکه دده دغسی نورځوانان هم خوښ وه، خویشکیا رچه اصلی نوم یې یاراودقندهاردارغنداب دخویشکو د کلی و، اوقطب خان دده مشهوره یاران وه، اوقطب خان دادمخان اخښی و، چه نازونومې خور ئې ورکړې وه، اوبیا دادمخان مرېی بلونامی پر مړ کړی؛ دادوه پهلوانان جلاجلا افسانې لری.

دبنادی اوبیبو دافسانې زمانه هم نه ده معلومه، دونه قدرمعلو میږی چه سید معصوم دسید صفائی زوی متخلص په «نامی» سره چه دجلال الدین اکبرلوی سپه سالار اولوی مورخ و، اودهجری زرم کال په حدودو کښې قندهاراوفراه ته راغلی دی پخپل کتاب «تحفهٔ معصومی» کښې لیکی چه زه په دی سفر کښې دبنادی اوبیبو دچه دوه تنه ربښتنی مینان په دلارام کښې یو ځای سره ښخ دی زیارت لره ورغلم نو که بنادی اوبیبو ددوه عصر ته نږدی مړه وای خامخا به ده اشاره ورته کړې وای، ځکه چه میر معصوم خولوی مؤرخ او متجس سړې وو

ظریف خان اوما بی هم دقندهار دکشکنخود یادفراه دچړادکلی وه، عنعنه وائی چه ظریف خان دبنادی خان تر بورو، (۲) اودبنادی خان دافسانې ثبوت خودزرم هجری کال په ّدی خواونه شو، نوضرور دا افسانه هم تردغی زمانې لاپخواتېره شوې ده وایه کیږی چه ددی پهلوانانو دکلاوکندوالی تر اوسه هم شته.

دمومن خان قبر که څه هم په قندهار کښې دملا صاحب داداخوند دغو نډۍ دکلی سره پریوه لوړه غونډۍ معارفی کیږی منګر زمانه اوو خت ئې نه دی معلوم، فقط ددې افسانې

(۱) اخوند درویزه مشهوره مؤلف هم په دغه عصر کښې ژوندی و، اودمحسن خان صوبه دارنوم په خپل کتاب مخزن الاسلام کښې اخلی.

(۲) څرنګه چه دظریف خان اوبنادی خان دنګل ناری پریوه وزن اویوه سوردی چندانی توپیر نه سره لری، نوبنایی چه دوی سره خپلوان اودیوه عصر وی.                    «نوری»

په یوه ناره کښې ومغلو ته اشاره کیږي ، دمغلو دوره خو تر زرم هجري کال دمخه او وروسته هم وه ـ دمومن خان په نکل کښې وائی :

څوانانو ننگ راباندی وکی ـ پلار می مغل دی ماښا مار اره لیږ ینه

## زمونږ ملی افسانې دادب دګورنۍ څخه دی یاد تاریخ غړی ګڼلی کیږی :

دمخه موهم وویل چه افسانې اوتاریخ څنډا نی تو پیر نه سره لری که ئې ولری هم لکه څوراو ورور داسی به وی ؛ هغه واقعه چه نېټه ئې صحیح معلومه اوپه پوره عنعنه یا دیوه مورخ له خوا دلیك په جامه کښې ونغښتله شی عیناً تاریخ ګڼله کیږی ، اوهغه واقعه چه نېټه ئې ښه نه وی معلومه اودلیك څخه دبا ندی پاته شوې وی اود خلکو په خولو کښې په عنعنه سره ویله کیږی البته افسانه بلله کیږی څینی علما نکلونه او روایات دروایی اشعارو په ډله کښې ګڼی او عیناً ئې دادب یو مهم غړی بولی اوځینی علما ئې دتاریخ څانګه بولی

زمونږ ملی افسانې دوې برخې لری : یوه برخه ئې نثر ده چه ددوو پهلوانانو تور پالی توب اومړانه ، غیرت ، شجاعت یادوو مینو دمینی وقایع اودژو ندون حالات پکښې بیا نیږی ، یا په بل عبارت دقصې وقایع ښئی ؛ اوبله برخه ئې نظم ده چه دمین اود مینی اونورو خلکو چه په دغه افسانه کښې شامل وی نارې او ددوی عرض وداد اوسوال وجواب په خاص ملی نظم اووزن سره راوړلی او ویلی کیږی دې نظم ته دپښتو او نکلچیا نو په اصطلاح دنکل نارې وائی چه دپښتو پر موسیقی اوغنائی سر باندی په لوړ اواز ویلی کیږی ددې نا رو څخه زړه منو نکی دطبیعت مظاهر لکه عشق خوشالتیا وصال اونور ښه ترا څر ګندیږی نو په دی حیث زمونږ دملی افسانو لمړۍ برخه تاریخی او اصلی وقایع ګڼله کیږی اودوهمه برخه ئې عیناً زمونږ دملی ادب جوهر او دملی ادب زوړ اساس بلله کیږی ګویا زمونږ ملی افسانې هم ادبی اوادب له کورنۍ څخه دی اوهم زمونږ دتیرو پهلوانانو او مینانو تاریخ یاد تاریخ غړی یادیږی.

## زمونږ دملی افسانو اقسام :

زمونږ ملی افسانې عموماً دمضمون له حیثه پردوو برخو ویشلی اودوه قسمه دی: عشقی او حماسی
عشقی افسانې لکه دقلندرجان اومیراجان افسانه ، دقطب خان اونازو افسانه ، او دښادی اوبیبو افسانه ، په دې افسانو کښې خالص مینه او محبت ، وصال او بیلتون او نور پکښې بیا نیږی
حماسی قصې لکه دفتح خان بړیڅی افسانه ، اودموسی خان وولیجان افسانه ، په داسی افسانو کښې دپهلوانانو توره ، مړانه ، شجاعت ، زړه ورتوب اونور پکښې ښوول کیږی ، اوپه هرحال په دواړه قسمو کښې د هغو مینو اوپهلوانانو افکار ، دیانت ، عفت ، عقائد ، پښتنی ، جذبات ، اوروحیات ، ملی دودونه اونور ښه لیدل کیږی .

یو بل قسم افسانې هم شته چه ټول اساس ئې پر هول، بېره، هیبت اېښو شوی دی د ډار او هول مناظر داسې رسموي چه یو پوره او غښتلی تراژیدی لیکونکی ئې ښښې هم نه شي رسمو لای لکه د زبرباني اونوري افساني؛ ځینې افسانې دی چه اروېدونکي ته خالص د عبرت درس ور کوي ځینې افسانې اروېدونکي پر علم او فن او کمال تشویق کوي لکه د مسگر او نجار اونوري افسانې (۱)

لنډه دا چه پر ته د هغو افسانو څخه چه ناری لري چه هغه خاص رزمي اوبزمي گڼلی کیږي نوری په سوو افسانې دی چه تقریباً هر یوه جلا جلا درس او مضمون لري، داسې افسانې هم ډیري لروچه په هغو کښې د پیریانو، دیبانو او جادوگرو او اوسم گرو او نور طلسما تو نه بیان شوی دی: مثلاً لکه د عربي او انگلیسي د الادین او څراغ افسانه لکه چه عیناً همدغه د څراغ افسانه په پښتو کښې هم شته چه د مضمون له حیثه هیڅ توپیر نه سره لري.

## افسانه او محیط :

پښتانه وایي چه لکه غر هغسې ئې کربوني، لکه محیط هغسې ئې سړی، یعنې څرنگه چه محیط وي هغسې ئې انسانان وي، او د هغه محیط اثر او اغېزه د هغه ځای د اوسېدونکو په غړو او په طبیعت، او روحیاتو کښې کیږي، څرگند ده چه د یوه ملت ادبیات او افسانې د دوی د طبیعت، او رو حیاتو سره سم او زیږېدونکي دی، د تود وملکو دوگړو په غړو کښې تل سستي او رخاوت وي، له دې لامله عزم او ثبات هم په دوی کښې چنداني نه ښکاري، تل په لټي او بې فکري اخته وي، نه د کار مینه لري، او نه د سبا فکر کوي، ټول احساسات ئې سوځلي او مړه وي، د دوی لو یه خاصه به داوي چه د وی یو گړی په تماشو او میلو او بل گړی به په غم لړلي او د گرمۍ په مدافعه به اخته وي.

د سړو ملکو دوگړو هم تل ژوندون گران او په گړاواخته تل ئې اندېښنه د خپل ژوندن او د هغه شي په تلاش کښې وي چه د دوی د ژوند ون سره مرسته او کومك کوي، لکه تاوده او گرم کالي، د استوگنې ځایونه او نور، په همدی سبب د داسې وگړو مزاج تل سوړ او همېشه هیښ ییښ پاتې، ټول حواس ئې و خپل ژوندون ته متوجه وي، د بلې خوا د چرت او خبرو اترو څخه لو یدلی وي.

د معتدلو ملکو وگړی تل جوړ او روغ وي، ځکه چه د معتدلو ملکو په فصلو کښې د صحت خاصه او روغتیا شته، نو له همدې لامله د دوی مزاج او طبیعت او احساسات هم ژوندی او روغ وي.

---

(۱) وایې چه په پخوا وختو کښې یو مسگر او یو نجار و. چه مسگر داسې داو سپینې ماهی تحت البحري غوندی جوړه کړی و، چه دریاب ته به ئې واچاوه، سړی به ئې په نس کښې و، د دریاب ټوله ماهیان او لوی نهنگان به ئې ښکار کول او وژل- او نجار داسې یو طیاره غوندی صندوق جوړ کړی و چه هغه به الووت او دوه کسه ئې وړلای شو، په یوه ساعت کښې به ئې د لسو شپو مزل پرې کاوه، همدا افسانه مالیکلې او په پښتو ټولنه کښې شته.          «محمد گل نوری»

نه د کهالت او سستۍ په غم لړلي وي ، او نه د سخت ژوندون او گذارې په غم اخته وي ، بلکه فکرئې تل سالم او د اجتماعي چرت او اوږدو خبرو اترو خاوندان وي .

څرنگه چه د محیط مزاج او آب هوا دوگړو پر مزاج اثر اچوي ، همدا رنگه ښځیله د محیط اجزا یعنې دښت او بیدیا . غرو ، شیله او ساحل هم دوگړو پر غړو او پر طبیعت او مزاج او احساساتو او فکر واثر او اغیزه کوي ، د دښت او بیدیا دوگړ تل پر خپل ځان تکیه او پر ځان ویسا لري ، د دوی مزاج اکثره په جوي اوضاعو پوري اړه لري ، د دښت او بیدیا و گړی تل چست او چالاك او زړه وروي ، د غرو وگړی تل په ځان غره او د آزادي هوا او آزاد طبیعت خاوندان وي ، او د ځان او کور و کلي او دوطن په ساتنه کښې د هیڅ رنگه فدا کارۍ څخه ځان نه سپموي ، او تل د خپلو نیکه گانو او پلرو عادات او اخلاق پالي ، او تل د پیکارۍ په وقت کښې د خپلو پلرو او توریالي نیکه گانو خبرې او اترې کوي ، او د دوی کارنامې او توریالي توب بیانوي د ساحل وگړی تل د خپلو تیر وملاحانو او غوته وهونکو وگړو او ما نوگانو خبرې کوي ، د دریاب د څپو او بادا سکو بیان کوي (۱)

د پښتو پاك او سپیڅلی محیط خو افغانستان او څرنگه چه د جغرافیائي علماو په نیز افغانستان یو غرني ملك دی ، نو بالعموم د افغانستان او سیدونکو ته د غرو او سید و نکي باید وو ایو ، دوی د خپلوا کۍ او آزادي طبیعت لري ، او تل خپلې اړی و ماندې پخپله پوره کوي د بل لاس او مرستې ته نه گوري ، پر خپل نفس او ځان ټینگه ویسا لري ، خپله خپلوا کي او آزادي او خپل ملت خپل ملك او وطن تر ټولو پر گران دی ، ځان پروړنې ځان پر قربانوي ځان پر جاروي ، خپل مال او اولاد او ځان د ملت د خپلوا کۍ تر ساتلو پوري هیڅ نه بولي ، تل یو د بله وسیله او رحم لري ، خپل ورور ورور بولي، د دوی په مزاج کښې کلکوالي، سختوالي، توریالي توب، مړانه ، شجاعت او عفت اخښلی دی .

## زمونږ د ملي افسانو خصوصیات او مزیات :

څرگنده ده چه زمونږ ملي افسانې ځانته خصوصیات او مزیات لري، یوله خصوصیاتو څخه دا خصوصیت او مزیت لري چه اروېدونکي په مطلقي اروېدو سره داسې په لړزراولي چه گمان نه کوم چه یو غښتلي تراژدي یا کمیدي ډرام دی پیښې وکړي ، پر اروېدونکي دو نه اغېزه کوي چه د ده نفسي او طبیعي جذبات داسې په ښور راولي چه نژدې دي چه په حماسي برخه کښې دی وتوري ته حمله کړي او پر دښمن دی بې درنگه حمله وکړي - یا دی په عشقي برخه کښې ولاړ شي ، ودی ناځي زمونږ د ملي افسانو هر بند او هر سطر وار وېدونکي ته یو پند او نصیحت او د عبرت ځای دی ، یوازې مونږ د خپلو ملي افسانو

(۱) د دې پورته بیان « محیط او انسان محیط او ادب » دی د ع امین الله خان زمریالي مضمون په ۱۳۱۷ د کابل کلنۍ کښې و کتل شی ، دې ښاغلي ادیب هلته په دې باره کښې ښه پوره توضیحات کړی دی .

صفت نه کوو، بلکه د نوری دنیا ویښ خلک چه په دې افسانو کښې څه لاس او تتبع لری هم د دې صفت کوی .

سی، ای، بېدولف انګلیس وائی چه د پښتو ادبیات د پښتنو یوازنی داحسا سا تو او عوا طفو تاریخ، او اخلاقو مظهر دی، دا اشعار دونه طبیعی او مؤثر دی چه پر اورېدونکی بې اختیاره اغېزه کوی، مثلاً که د جنګ بیان کوی نو دستی د اورېدونکی ستر ګی سرې او د ځایه بې ځایه شی، د جنګ حسیات ئې په نبور راشی . او په همغه ځای کښې چه د عشق بیان کوی د اورېدونکی پر عوا طفو دونه اغېزه کوی او دونه ئې عواطف نری او رقیق کړی چه دده او سېلی او اوه اوه دده د زړه او عواطفو نمایندګی کوی دا ځکه چه دونه لطیف او جنګیالی احساسات د هیڅ قوم په زړو کښې لکه د پښتون تېر چه دی ژوری رېښی نه دی ځغلولی . له دغو ادبیاتو یو قسمت همدغه افسانې او د افسانو ناری دی .

بل خصوصیت او مزیت ئې دادی چه د پښتو ژاړه او پخوانی ژغونه او آوازونه ئې په خپل ژړه کښې ساتلی او بیله کم تغیر څخه ئې کټ مټ لکه پخوا چه وه ترن ورځی پوری را رسولی دی، دا ژغونه او نارې دعربی او فارسی، هندی ژغوا و نارو سره هیڅ مشابهت نه لری، و نور دلیل ته حاجت نشته البته دېر و به زمونږ دملی افسانو نارې اورېدلی وی، او یقین به ئې شوی وی چه دا پر عربی اوزانو نه برابرېږی، د دې دثبوت دپاره به مونږ لاندی یوه ودوې نمونې هم ولیکو :

دفتح خان په نکل کښې دفتح خان پلار اسلم خان چه فتح خان دپلار بې صلاح په نیمه شپه کښې د کوچ نغاره وډنګوله مخ د هندوستان پر خواتلی پر فتح خان ناره کوی :

څه کی څه کی داهوډی فتح خان څه کی

پر نیمه شپه ئې نغارې وډنګولې ـ لویه خدایه خان پر کم لوری واته کی .

د دې نارې لمړی مسری دوولس سپېنه (سایېل) او څلېر ویښت توری ده، او دوهمه مسری ئې پنځویښت سپېنه او نه څاویښت توری ده .

د جلات خان په نکل کښې شمایله ناره کوی :

که کراردی نن زماشوی کرار دی

ناسی کښېنی سېپایو، چه پر مخ یې دخونی زمری پرهاردی

د دې نارې لمړی مسری ۱۲ سپېنه او ۲۲ توری ده، او دوهمه مسری ئې شل سپېنه او ۳۹ توری ده .

دظریف خان په نکل کښې دظریف خان مینه «مابی» دده په بېلتون کښې ناره کوی .

زده زده یم خلکو زده یم، سینه کبابه پراورپرته یم که ددې واری

په ظریف خان وی پسی مړه نه شوم، تکه می بولی حرامزاده یم

های های حرامزاده یم

دا ناره توله په یوه اواز په یوه ساپیوسته ویله کیږی، او توله یو بند ده، آخره جمله ئې تکرار کیږی ـ ګواکی لمړی مسری ئې ٤٤ سپېنه او ۸۷ توری ده، او اخره یعنی دوهمه مسری

چه د تکرار جمله ده ۷ سپڼه اوشپاړس توری ده .

د خویشکیار په نکل کښې شاتړینه دده محبوبه پرده ناره کوی :

خویشکیاره ته چه زما په غېږ کې ریږدی

د کرم لښکر که راغلی خویشکیاره ته به تر پلې ما به پرېږ دې .

ددې ناری لمړی مسری ۱۲ سپڼه او دوهمه مسری ئې ۲۰ سپڼه ده - تاسی و گوری ددې پورته نارولمړی مسری د سپڼ او تورو په نسبت د دوهمی مسری سره څونه تفاوت لری . څرنګه چه د تورو او سپڼ له حیثه تفاوت لری ، دغونه د قطع اولحن او آواز ، اواوږدوالی په نسبت هم پود بله تفاوت لری - داهم ده چه دیوه نکل ناری تو له د سپڼ او تورو په تعداد کښې پورنګه نه دی بلکه ډېر تفاوت سره لری ، هرسړی دغه د نکل ناری نه شی کولای څوچه نکلچی نه وی یائې اروېدلی نه وی . ایا په عروضی بحرو کښې ځوك داسی بحر پیدا کولای شی ، ماخوداسی بحر په دې کښې نه دی پیدا کړی دا دونه توپیر سره لری لکه مځکه واسمان !

زمونږ د ملی افسانو بل‌مزیت دادی چه هغه اخلاق اوعادات او پښتنی خصوصیات یعنی توره ، مړانه ، غیرت ، زړه ورتوب ، دیانت ، ناموس داری ، پښتنی مینه او محبت ، وفا داری ورور گلوی ، اتفاق او اتحاد ، یو والی چه زمونږ تیرو پښتنو او پهلوانانو درلود زمونږ افسانې ئې بیانوی ، او سنی پښتانه هغه اروی ، اوهغه اوصاف دځان خط مشی گرزوی داسی عمل په کوې لکه دیوه زبردست ناصح په نصیحت ، ددې دپاره به‌هم څو څو مثالونه اونمونې لاندی راوړو :-

هر کله چه شمس الدین دفتح خان په جنګ کښې مغلو به شونوئې دفتح خان څخه دمتارکې درخواست وکړی ، اوفتح خان ئې یوازی دصلح اومتارکې دامضاد پاره ورغوښت . اوقسم ئې ورسره وکړی چه په تش لاس راشه زه په تاغرض نه کوم . فتح خان پر قسم ودرېدی ورغی - که څه هم کرمخان ورته وویل چه مځه په زیاته بیا په تش لاس او دا ناره ئې پر وکړه :

فتح خانه باورمه کړه د مغل په کلامونه

دا موډېردی اروېدلی دمغل اول کلام پسی تیغونه

مګر فتح خان دخپلی پښتو په سبب ورغی او شمس الدین قسم مات کړی په چم ئې دفتح خان لاسونه وروتړل - کرمخان پسی خبر شو - ورغی توره ئې ورواخیستله برابر دشمس الدین په دربار یوازی ورننووت ناره ئې پر وکړه :

نن می و چیچل د درده خپل بریتونه

د کرم ژوندون مشکل دی چه تړلی دفتح لالا لاسونه

بله ناره ئې پر وکړه :

اوس به جوړ کم د مغلو پر سر خلی

د مغل دغه سز اده چه تړلی فتح خان نازك لاسونه

هغه وچه برېتونه ئې په خوله چخ کړه توره ئې بسې لښته کړه د شمس الدین حاضر باش ئې په یوه کلله تیت پترك کړه فتح خان ئې را ایله کړی .

داوګوری چه د فتح خان ټول یاران شهیدان شول، رابیاورته وویل چه اوس نو یوازې پاته شوې ځان تسلیم کړه . فتح خان ځه جواب ور کوی :

که تیتی د ګوارو ښانګي تیتی
یامې خوری یامې موریې، څوګې نه کړم پر داسپینه سینه یخې

فتح خان په یوه سر د بسته لښکر سره وجنګېدی څو په اوسترې کښې د پښتو پر ننګه دی هم شهیدشو، او پخپله دښمن شمس الدین د ده پر ننګه اودده پر توریالی توپ امناوکړه، او پس له مرګه ئې پر ده تصدیق وکړی او په اوږد اواز ئې ناره پر وکړه :

فتح بریت دی د سروزرو په شپیلۍ کی
ته لایق دمرګی نه وی فتح خانه، ته لایق وې د ډیلی د با چهۍ

د موسی جان او ولیجان په نکل کښې چه موسی جان او ولی جان او میر ولی د سهېل په جنګ کښې مړه او شهیدان شول، نو سهیل ددوی کورته راغی غوښت ئې چه کونډه یانې ئې بوزی وئې کړی . تاسو چه د ولیجان خوروه دی ئې په ډېر هنر او لیز می کورته ننووست چه مېړه کوم دی ، وروسته ئې د کوریه خونه کښې وسهېل ته توره اوسپر کښېښوول دروازه ئې وتړل چه ونه تښتی نو ئې ناره پر وکړه :

سهیلیه توره اخله راولاړېږه
سهیلیه د ښځې خیال را باندې مه کړه، سهیلیه ښځه نه یم مه شرمېږه

هغه وچه په ښځنی لاس ئې سهیلی اود ده ملګری ټوله ټکر ټکر کړه، نو تاسی وګوری ! تاسو کولای شو چه سهیلی ئې پر کراره په زهر ووژلی وای، مګر په پښتنه وه، په ښکاره ئې سهیلی خبر کړی توره او سپر ئې ورته کښېښوول او په خپل پښتنی غیرت ئې مړ کړی - که دې غیرت او مړانی ته ځوك ځیر شی چه شپېته تنه ځوانان مسافر په هند کښې د بسته توانا لښکر سره په اتفاق او اتحاد و جنګېدل اودوی یو تربل جار ېدل او ځانونه ئې یو تربل جار کړه او ټول شهیدان شول او د دوی مړی لا ودښمن ته پاته نه شو - او تاسو چه په داسی حال کښې وچه هیڅ نر ګانډی ور پاته نه و، پر ته له څو کونډه یانو او ناویانو ښځه، دې په عین ضعف کښې خپل پښتنی غیرت د لاسه ایله نه کړې او خپل عفت ئې وساتی داخالص مونږ ته دغیرت او مړانی اوتوری او پښتنګلوی درس دی . او مونږ ته داراښیی چه باید په هیڅ حال کښې که څه هم بی وزلی اولږ یو خپل غیرت او پښتو دلاسه ونه باسو، او په نره توره خپل ژوندون وکړواوخپل ناموس او وطن وساتو ، او تل زړه ور او په اتفاق و اوسو، خوشحال خان توریالی هم دا وصیت کوی :

که اسمان دی دزمری په خوله کیورکه
د زمری په خوله کې مه پرېږده همت

ښادی اوبیبو داکازوی اولور سره کېدل، اودواړه په یوه کور کښې اوی شوی اور ښتنی مینه ئې دکو چنیوالی څخه په زړو کښې وه. یوه ورځ چه دواړه ځنګله ته په کونه وکوبسی تللی وه، ښادی چه دبیبو مخ ته وکتل، ددی مینی ئې دزړه دصبرو دانی ورانه کړه خو له ئې ځنی وغو ښتله، بیبو چه پښتنه ننګیالۍ پیغله وه، اوخپل پښتنی پت اونا موس ډیر پر ګران و، په څه الفاظو ښادی خان ته جواب ورکوی :

چه داښادی هنك ومایې تل او دې څرې

اوس چه داښادی رالوی شونو دماغواړی خولګۍ

دلته مینه او پښتنواله سره راغله! معلومه ده چه دپښتنوالی احساسات تر هر څه غالب دی، بیبو خو هم پر ښادی مینه وه منګر دلته دپښتنوالی او پاك لمنۍ او خپل عفت او پا کۍ په حجاب کښې وپېچله شوه، ځان ئې تسلیم نه کړې. او ښادی خان هم ددې تانې او پیغور په سبب وطن پرېښو بل ولات ته ولاړ، دواړو دمینی او بیلتون سره لمبه پر ځانو قبوله کړه، او دپښتنوالی پیغور ئې قبول نه کړی، څو په اخر کښې دواړه پر څه پیهر مړه اوزهره چاودی شوی دی.

موسی خان او ګلمکۍ هم دا کازوی اولور سره کېدل او دواړه سره میئنان او یو دبله ئې زړونه سره بایللی وه، او مورو پلار دواړه په نکاح سره ور کړی وه، هر کله چه موسی خان پر کور نه وو سهیلی ګلمکۍ په زوره بوتله - وګوری! چه تر مرګ ګلمکۍ وسهیلی ته تن ورنه کړې او نه دسهیلی لاس ځنی ومښت او تر پایه په ئې داورته ویل :

که تو زن دی داسهیل دووس تو زن دی

چه موسی پر دنیاوینه سهیلیه پر ما بل مېړه حرام دی

څو په پای کښې ددې هم دموسی خان پر قبر زهره وچاوده مړه شوله.

همدغه رنګه مومن خان او شیرینو پلرو په نکاح سره ورکړی اودوی هم د کو چنیوالی رښتنی مینان وه، چه دمومن او شیرینو پلرونه مړه شول، نو شیرینو خپل ورور چه ز بر دست خان نو میده اودمومن خان دا کازوی کېدی ځنی وګرزوله په لاس ئې نه ور کوله: نو ده دخپلو ترېرو سره نه مرګ وکړی نه تیپ، سره له دی چه غښتلی پهلوان و، هندوستان ته ځنی ولاړ، او دهندوستان دتګ په وخت کښې څه سوال وجواب سره کوی ؟: -

| | |
|---|---|
| شیرینو : تاد سفر موزی په ښو کړې | دژ یړو ګلو باغ پر چا سپارې مینه |
| مومن : ماد سفر موزی په ښو کړې | دژ یړو ګلو باغ پر خدای سپارم مینه |
| شیرینو : د هندوستان ولور ته ځه | دهندوستان نجونی لولۍ بند به دی کینه |
| مومن : د هندوستان ولور ته ځمه | دهندوستان نجونی زما خوندی مندی دینه |
| شیرینو : مؤ منه ځه الله دی مل شه | زه شنکی خال او زلفی تا لره ساتمه |
| » : مسافری په جمع زړه که | خولګۍ می ستاده که زه خاوری شم مینه |

هغه وچه مومن خان هندوستان ته ولاړ ، اوهلته ئې دمغلو په سلطنت کښې یوه توره او مړانه وکړه اودمغلو باچا خپله لور دده دمړانې په عوض کښې ده ته ورکړه ، اوده تر پایه لاس ورنه وډې اونه ئې دهندوستان وبلې ښځې ته وکتل دواړو ترمرګه خپل پت اوپښتنواله اووفاوساتله ، اوخپل عهدئې مات نه کړ په خپله پښتو اوقول ټینګ ودریدل .

همدغه رنګه جلات خان اوشمایله چه شمایله ئې محبوبه وه ، او په بلخ کښې دملامیر وپه مسجد کښې طالب و ، دملامیرلور حجرې ته ورغله چه زه دې کوم پرتامینه یم ، منګر دې دمخه لا خبر ووچه دارالحی نوې سر په لاری کښې ورته وتاړه چه زه پاك یم بوی مې ځی ، په دې چم دپښتنوالی عفت اوغیرت خوندی کړ اودبدوځغه ئې ځان وژغوری .

شهو چه ددلی محبوبه وه ، اومین ئې اکبر باچا بندی کړی وو ، شهو پسې ولاړه ، غوښت ئې چه خپل مین راخلاص کړی یاداهم ورسره مړه شی . هر کله چه دا په سیند کښې په کښتۍ کښې کښینستله داخودیره ښایسته وه او په تورسترګی مشهوره وه ، دکښتۍ وان خوښه شوله ، کښتۍ ئې د ګدر ځغه چپه کړله زړه ئې وچه ولې ئې تښتوی . شهو په پوه شوله ، وګورۍ ! شهو دلاس وښی اوباهو ګان په نرمی سره ورکړه او کښتۍ وان ته ئې وویل چه دغه دلاس باهومې واخله زه پښتنه یم چپ نظر له منځه وباسه کښتۍ چپه مه بیایه :

کښتۍ وانه کښتۍ سمه پر ګدر باسه
دادلاس باهومې واخله کښتۍ وانه چپ نظر له منځه باسه

پانو دعلی بیګ مینه اومحبوبه وه ، علی بیګ هندوستان ته په تجارت پسې تللی و ، معصوم خان چه دهغه وطن مشر اوخان و . خوك وائی باچاو ، شاپانو ئې لیدلی اوخوښه شوې وه غوښت ئې چه په غیر مشروع لاره سره ئې کورته بوزی ، منګر داځلمۍ پښتنه وه ، خو عمر ئې معصوم خان په بهانو اوپلمو غولاوه ، ځان ئې ساتی او په علی بیګ پسې ئې خطونه اوحالونه استول چه ژر راشه :

علی بیګه تاته استوم حالونه
که په دې میاشت کښې رانه غلې معصوم خان دی په باغ ګډایسته مالونه
علی بیګه تاته استوم چټې
که په دې میاشت کښې رانه غلې توردکن اره به درسمه بندې

خو هغه وچه علی بیګ وځنډیدې تر خپلی مدې واوښت ، معصوم خان زور ورسره کاوه شاپانو مجبوره شوله بهانه اوپلمه هم پرو دریدله ـ معصوم خان لی په هنر کورته ننوست او پانو پښتنې داسې کارورسره وکړې لکه تانو پښتنې چه دسهیلی سره وکړې تکړ تکړ ئې کړې .

مابۍ دظریف خان مینه وه ، دواړو دخپلی پښتنوالی اوخپل عفت او ناموس دارۍ دساتلو

دیاره د خدری چه دظریف اکاو ، خه خواری پرځانو تیری کړلي ؟ او سپینه مایی زده بودی شوله دظریفخان پربیت ناسته وه .

گل بشره چه دملاعباس چه متخلص په طالب جان سره و. مینه ئې وه، تاسی ددوی قصه واروی اووئې گوری چه دوی دپښتنو دپښتنگلوی په ساتنه کښې څه شاه کاری کړی دی او څه دبلېتیا نه غمونه ئې پرځانو پهدې باره کښې وړی دی ؟

دقطب خان اوناز ونکل اودخویشکیان اوشاتریني نکل بههم ځینو اروپدلی وی. دادم خان نکل خو هرچا اروپدلی دی . اودقلندر اومیرانکل چه دا دواړه دحمید ماشو خیل په وخت کښې وه (۱) البته چاو چا به اروپدلی وی یا به ئې نهوی اروپدلی، داافسانه دملگرتیا او صداقت لهحیثه دونهدپښتنو په طبیعت کښې موثره ده چه په مطلقی اروپدو سره داروپدونکی په ستر گو کښې اوښکی دمرغلرو پشان څرگندیږی ، دادوه ریښتنیملگری او صادقان دواړه یودبل په جدایی کښې زهره چاودی او مړهدی . دقلندر دمیرا په جدایی اوبلتانه کښې دهیری ژړاڅخه دستر گو سپین شنه اوبسی بوندشوی دی . قلندرلوی زبر دست ادیب هم وچه یولوی دېوان ئې اوس هم په پښتو ټولنه کښې شته، پهدېوان کښې قلندر دهری غزلی په اوستری بیت کښې دخپل نامه سره دمیرانوم سم یادوی . لکه افسانه چهئې مؤثره ده دېوانئې هم دغسی مؤثردی اودمینی اومحبت په جامه کښې نغښتی دی؛ دلته بهددېوان درباعیاتو اودافسانې یوه ودوي ناري هم راوړو :

د نکل ناره

که راشه راشه د لیره راشه زه دی غلام یم ته می اغاشه
یاردی پر شوخو سترگومین کړم بیا راته وایې دما جلا شه

د دېوان رباعی

نصیب راو کړي چار نا پسندی دسیند پرغاړه مړشوم لهتندی
که هند له تللی میرا می راشی هله به وایم نصیبه رندئې

د نکل ناره

که اوردیاوردی هجرانهاوردی زه قلندریم پکښې می کوردی
د اوربه سونگ وی دچارضاشی رضامی نهده راباندی زوردی

د دېوان رباعی

سهار سبا شو پتېږی ستوری خبر را نه غی دیار دلوری
قاصده ورشه خبر ئې راوړه پسی می سپین شول دستر گو توری

(۱) فضل دسبحان پر قلندر دپشعروشو ... د اواړه سبب فصیح بلیغ ودماشو

## د نکل نـاره

که سپینی سپینی سپوږ مۍ سپینی احوال می یوسه دیارتر مینی
پر میرا جان می سلام ووایه قلندر خوری وا د ږدګی وینی

لنډه داچه دا افسانې ګرده ما تولی کړی‌دی-د فتح‌خان ورا بیا-جلات‌خان و شمایله - موسی خان او ولیجان - نبادی اوبیبو- مؤمن‌خان او شیرینو افسانې دملی هنداری په‌لمړی جلد کښې چاپ اوطبع شوی دی که‌حاجت‌وی هلته دی وکتلی‌شی - اودا نوری افسانې لکه دطالب جان افسانه - دلی اوشهو،قطب‌خان او نازو-خویشکیاراوشا ترینه - قلندر اومیرا،ظریف‌خان اوما بی‌علی‌بیګ‌اوپانږواوخه نوری افسا نې می دملی هنداری د دوهم جلدپه عنوان جمع او لیکلی دی اووطبع ته اماده دی‌که خدای کول ژردی چه‌چاپ‌دی شی .

داوه یوه لنډه کتنه‌چه زمونږپرملی افسانو وشوه. زمايه‌عقیده خو زمونږ ملی افسانې دملت هنداره‌ده، زمونږملی خواص اوعواطف‌اومشاعر په‌دوی کښې پټ دی، که خدای کول ژر دی چه دا پټی خزانې وروورولګی شی ! ! ! (۱)

کابل : پښتو ټولنه - ۱۵ حمل ۱۳۲۲

محمدګل نوری دپښتو ټولنی دتالیف اوترجمې مدیر

---

(۱) ددې مقالې ماخذ:د کابل کالنی۱۳۱۶، ۱۳۱۷ دښاغلی زمریالی‌مضمون-دکابل ۱۱۱ مجله زماخپل‌مضمون - لمړی جلدپښتانه شعرا دښاغلی حبیبی-ملی هنداره لمړی اودوهم جلد زما خپل تالیف، اصول التربیة وفن التدریس دمصر طبع۱۳۴۷-۱۹۲۸-محینی زماخپل یادداشتونه - د آریانا مجله ۲ شماره ۱۳۲۲



قطرهٔ شرشك‌را خشك كردن كار شرافتمندانه‌است ازينكه دريای خون جاری كنيم . « بايرن »

# مهمترين اختراعات جديده

بنا‌غلی مير علی‌اصغر « شعاع »

دانشمند معروف پاستور گفته بود : يگانه چيزيكه تلخی‌های زندگانی را ازبين ميبرد وحيات پر مرارت را به‌زندگی باحلاوت مبدل ميسازد اول كار و قبول زحمت، سپس كشفيات و اختراعات علميست . واقعاً نظريهٔ اين عالم زبردست خيلی صحيح وكاملاً حقيقت دارد .



بناغلی مير علی اصغر « شعاع »

اگر كشفياتی كه‌در لابراتوارهای متنوعهٔ دول عالم صورت ميگيرد همه عملی گردند و ساحهٔ استفاده از آنها جنبهٔ عموميت حاصل كند آن وقت مليونها نفوس بشر از بلای فقر وفاقه نجات يافته وبيكاری بكلی از بين برداشته خواهد شد مگر دراثر موانع ومشكلات مهمه بشر نميتواند جميع ابتكارات واختراعات خودرا لباس عمل بپوشاند.

اگرچه درادوار مختلفهٔ حيات يك سلسله علماء ومخترعين نام آوری قدعلم نموده وبه نسبت عرق ريزيها وزحمات شباروزی خود‌ها بسا آلام ومشكلات ابناء نوع را ازبين برده اند ولی شايد قرن بيست وبالاخص اين دوسه سال اخير ازحيث تعدد كشفيات وتوجه مزيد علماء دراين باره برازندگی مخصوصی داشته باشد . امروز متخصصين علوم در دول محارب وغير آن بلا انقطاع مصروف تتبعات و كشفيات علمی بوده مخترعات حربی وغير حربی آماده ميكنند وبهر صورتی كه ممكن باشد ميكوشند تا احتياجات خودرا نسبت به ديگران مخصوصاً رقباء برطرف سازند ودر عين حال از آنها فوقيت وبرتری هم حاصل نمايند .

داكتر چارلس ستاين Dr.Charles Stine معاون كمپنی معروف ( دوپونت دی نيمورس ) سال ۱۹٤۲ را بنام ( سال اختراعات ) ياد نموده ودر هنگام افتتاح جلسهٔ عمومی انجمن كيمياوی امريكائی راجع به اختراعات در اين سال چنين شرح داد : « در سر تاسر

اضلاع متحده کیمیا دانها و علماء مصروف تحقیقات مزید سا ینسی بوده ودر هر یك لابراتور به تعداد هزار نفر متخصص کیمیا جهت کشف چیز های جدید مصروفیت دارند فعا لیت های علمی آنها بدرجهٔ شدید ومؤثر است که اینك مکتشفات ۱۹٤۰ در جنب آن کهنه و قدیمی دانسته میشود . اومیگوید اگر مجبوریت های حربی رونمیداد ووضعیت مجار به فشاری بر دول وارد نمیکرد البته این همه اختراعات چند ماهه بایست درخلال یك قرن کامل ظهور می نمودند. امروز همه میکوشند وادوات مدهشهٔ تخریبی وانهدامی بروی کار می‌آورند ولی فردامکتشفات خود هارا به ترمیم واصلاح تخریبات امروزه منحصر میسازند . »

وزارت حربیهٔ بر طانیه در این نزدیکیها چنین اعلان نمود که در هنگام صلح تعداد اختراعات سالانه بین ۱۰۰۰ و ٤۰۰۰ بالغ میشود مگر تنها در ۱۹٤۱ اندازهٔ مقترحات به (۳٤٥٤۰) عدد بالغ گردید وامروز بصورت عمومی ازطرف اشخاص ماهانه ۲۰۰۰ اقتراح علمی صورت میگیرد مگر همهٔ آنها قابلیت عملی شدن را نداشته وعلماء متبحر بعد از غور و تحقیق تمام از آنها انتخابات می نمایند .

دول محور نیز دراین زمینه قدمهای متین وسریعی برداشته وخاصتاً سایئس حربی آنها پیشرفت شایانی نموده است . در تانك ها، طیاره ها ، جهاز ها و تحت البحریها ابتکارات عجیبی نموده وتاحد ممکن ساحهٔ فعالیت های علمی خودرا توسعه داده اند . کنون خبر بعضی از مهمترین و جدید ترین مخترعات دول مختلفهٔ عالم را از منابع متعدده تحصیل نموده واینك جهت مزید اطلاع قارئین محترم با کمال ایجاز واختصارعرضه میداریم :

## جهازجنگی فضائی



طیارهٔ بمب افگن نوع جدید مارتن‌مارس که‌قوای بحری امریکا آن‌را بنام (جهازجنگی فضائی)

یادمیکند ازجملهٔ بزرگترین کشتی های طیاراست که تابحال ساخته شده . در ا گست ـ ۱۹۴۰ چوکات واساس جهاز مذکور تحت نظارت بحریه امریکا نهاده شد . درجو لائی ۱۹۴۱ بالهای آن بوزن ۲۰۰۰۰ پاوند دربدنهٔ جهاز نصب گردید . در ۸ سپتامبر برای ۵ روز تجربه پروازامتحانی آن با گذاردن نصف یك ملیون پاوند وزن بربالهای آن صورت گرفت واینك در ۱۹۴۲ از آن عملاً درمیدانهای جنگ استفاده نمودند. طول این طیاره ۱۷۰ فت وعرض بالها ازیك گوشه الی گوشهٔ دیگر ۲۰۰ فت و اگر طیاره به دم ایستاده شود بالهای آن اززمین برابر یك عمارت بیست منزله بلند خواهد بود . عملهٔ آن میتوانند که در وسط بال آن قدم زده وهوا خوری نمایند . انجن آن دارای ۸۰۰۰ قوهٔ اسپ بوده و بر علاوهٔ اطاق افسران اطاق جدا گانهٔ برای تفریح وتنفس درآن تهیه شده وموضع میز افسر بزرگ درحصهٔ بینی طیاره میباشد واو برعلاوه اطاق جدا گانهٔ هم برای خود دارد . دربین بدنهٔ طیاره دو اطاق طعام خوری ، دوحمام شاور دار بنظر می آید عملهٔ آن از ۱۱ نفر مرکب میباشد . این طیاره ( ۱۵۰ ) عسکر را با لوازم واسلحهٔ آنها انتقال داده میتواند . طیارهٔ مذکور باخود موتور بوت ها داشته و عسکر بایسکل دار با توپهای سبك وتوپهای ضد تانك بواسطهٔ آن مسافرت میتوانند این جهاز قادر است که از امریکا به اروپا پرواز نموده و درحالیکه در راه هیچ توقف نکند پس به امریکا مراجعت نماید .

## تعیین طیاره درعقب پردهٔ دمه‌وغبار

ارونگ ولف امریکائی آلهٔ بسیار دقیق وحساسی اختراع نموده است که ذریعهٔ آن طیارات حمله آوررا از فاصله خیلی‌دور معلوم میکند این‌آله در مقابل شعاع سرخ شدیدالتأثیر است ، شعاع مذکور از محرك وانبوب طیاره تابش میکند واگر چه خواص آن مانند خواص اشعهٔ مرئیست ولی امواج آن طویل بوده وچشم آن را دیده نمیتوانند . چون این شعاع غبار ودمه را میشکافد لذا بذریعهٔ آلهٔ جدیده معلوم شده ودر نتیجه موقعیت طیاره در فضا تعیین میگردد .

قیمت و اهمیت انسانرا فوری مورد هوا خنده قرار مده زیرا در بالا امواج متحرك دیده میشوند ومروارید درعمق یافت میشود. «اوتوفون لایکسنر»

## حرارت در ۶۰ درجه تحت صفر

بعضا هوا بازان بمقامات بسیار بلندی پرواز میکنند وبرای اینکه درمقامات موصوفه سردی فوق العاده آنهارا تکلیف ندهد لباس چرمی وپوست گوسفند دربرمی نمایند. درین اواخر طوریکه درین فوتو ملاحظه می نمائید لباس مذکور را ذریعهٔ جریان برق وحرارت آن گرم نگاه داشته ودر نتیجهٔ حرارت بدن را طوریکه لازم است حفظ میکنند. ازخصوصیات لباس مذکور یکی آنست که وزن آن نسبت به لباس معمولی بسیار کم فرق داشته ومانع فعالیت هوابازان هم نمیگردد. این لباس درسردی ۶۰ درجه تحت صفر (میزان الحرارهٔ فارنهیت) پوشندهٔ خودرا گرم میسازد.





## طریقهٔ جدیده برای گل کردن

### بمب های محترقه

سرکردهٔ بتالیون اطفائیهٔ لاس انجیلس به اسم جیمس ال دانکس بجهت گل کردن بمب های آتش افروز مگنیشیم دار ابتکارخوبی نموده وصرف در مدت نیم دقیقه میتواند که شعلهٔ بمب راسرد وخاموش گرداند. کلاه مخروطی شکلی که دراین فوتو ملاحظه میشود آب رابر روی آتش افگنده وآن راخاموش میسازد ودرعین حال اشتعال مگنشیم رامانع میگردد.

## طیارهٔ بدون پروانه

در ایطالیا جدیداً طیارهٔ ساخته اند که بهاسم (سی،سی نمبر ۲) یاد میشود . در این طیاره برای دونفر پشت هم موضع تهیه کرده اند بالهای آن پست بوده و یکشاه پردر پشت آن نصب نموده اند. این طیاره دارای خصوصیات دیگری هم بوده وزن آن به (۱۱۰۰) پاوند بالغ میگردد . هنوز راجع به پرواز آن پرش های امتحانی بعمل می آید سرعت رفتار آن فی ساعت ۱۳۰ میل است وموتور آن راطوری ساخته اند که بدون پروانه بحرکت افتیده وقوهٔ پیش راندن در آن تولید میشود ودر نتیجه طیاره بهوا برمی آید.



## تانکهای جدید مواد سوخت

دراین اواخر تانکهای موادسوخت طیاره را ازمشتقات رابرو پلیو فورم که نسبت به تانک های الومینمی در مقابل گلوله مقاومت میتوانند اختراع نموده اند . دراین فوتو اثرات گلولهٔ ماشین گن را در تانك الومینمی بطرف چپ وتانك جدید جانب راست ملاحظه مینمائید . این تانك در هنگام فیر مشتعل نمیشود ودر وقت بار کردن و برداشتن صدمه واذیتی به آن نمیرسد .



## تحت البحری دو نفری

جدیداً درجاپان تحت البحری عجیب دونفری اختراع نموده اند که خیلی مورد انترست فوای بحری قرار یافته است . این تحت البحری در عمق آب فرو نمیرود بلکه بفاصلهٔ خیلی کم

ازسطح آب حرکت میکند سرعت رفتار آن فی ساعت ۲۴ نات (میل مخصوص بحری) بوده وجاپانیها مخصوصا درمحاربات بحرالکاهل وپرل هاربر از آن استفاده نموده اند .

## کشتی جدید نجات

وزارت بحری انگلستان درین او اخر اعلان نمود که برای نجات اشخاص و عملهٔ جهاز هائیکه مورد تعرض تارپید وی تحت البحری قرار می یابند کشتی نجاتی اختراع شده است این کشتی باموتورهای پترولی مجهز بوده وبرای ۳۳ ساعت پترول باخود داشته ومیتواند که دراین مدت فاصلهٔ ۲۰۰ میل راطی نماید . خصوصیات دیگر این کشتی تابحال معلوم نبوده واز همه آله های نجات فوقیت دارد .

## آدم فایر پروف

برای عملهٔ اطفائیه وآنهائیکه جهت نجات اشخاص وسامان باید ازمیان آتش عبور کنند یك نوع لباس مخصوصی برنگ خاکی از پنبهٔ سنگی اختراع نموده اند این لباس تمام وجود را پوشانده وآتش آنرا سوختانده نمیتواند. برعلاوه لباس مذکور خیلی سبك بوده وتمام اعضای بدن را احاطه مینماید و دارای کلاه مخصوصی میباشد که در موقع ضرورت روی انسان را هم پوشانده و بحیث خود کارمیدهد .

## تفنگ جدید استرالیائی

در استرالیا تفنگی اختراع نموده اند که به اسم (اون گن) یادشده وازجملهٔ بهترین ماشین گن های سبك بشمار میرود . این ماشین گن ازشانه ویا تهیگاه فیر کرده و درسه لحظه سی قطار کارتوس ازخود بیرون میکند. وزن آن ۱۰ ½ پاوند است و بصورت اتوماتیکی وباحرکت ماشه فیر میشود . مخترع آن جوان ۲۷ ساله است به اسم ایویلن اون .



## لوکوموتیف ضدآتش

برای گل کردن آتش‌ها وحریق انجن‌مخصوصی در راه ریل تهیه کرده‌اند که بذریعهٔ آن چندین واگون به استقامت راه ریل حرکت نموده ودر هر واگون تانکهائی به گنجایش وظرفیت ۲۲۰۰ گیلن آب تهیه نموده اند ؛



در صورت وقوع حریق با سرعت هرچه تمامتری از آن استفاده نموده ودر هنگام بجریان افتیدن انجن لولهٔ آب داخل تانکها شده وبه این ذریعه در اطفای آتش میکوشند .

درفوتوی فوق لوکوموتیف مذکورزا بالوله‌های آب آن ملاحظه می‌نمائید .

## گراموفون های جنگی مخفی

در برطانیه آلهٔ اختراع نموده اند به اسم سنکر وفون که یکی ازمخترعات مهمهٔ جنگ امروزی بشمار میرود ساختمان آن بدرجه‌ سری‌است که‌حتی صانعین ریکارد های گراموفون با وجودی که در ساختن آن سهم بزرگی دارند از مشاهدهٔ پرزه ها و یافوتوی آنها محروم بوده وهم چنان عکاسان ومصورینی که درامور آن مداخلت دارند مجاز نیستند تا آواز ریکارد آلهٔ مذکور را بشنوند . سنکر وفون برای تعلیم بعضی از اشخاص معین مورد استفاده قرار داده شده ودراثر مساعی یك انجنیر ، متخصص ریکارد گیری ، وعکاسی تهیه شده و از فلم بهتر میباشد چه‌در اثنای‌روشنی روزهم نشان داده میشود ، هنوز وقت آن نرسیده تادربارهٔ خصوصیات سنکر وفون معلومات بیشتری داده شود . امروز صنعت ریکارد گیری

گراموفون در برطانیه بمسائل حربی وپیشرفت امور جنگ بیشتر تعلق دارد . چنانچه فعلا تعلیمات قوای هوائی اغلبا ذریعهٔ ریکارد گراموفون صورت میگیرد . مثلا قبل از پرواز صدای طیاره را ذریعهٔ ریکارد بهگوش هوا بازان آشنامیسازند وهم چنان از آواز ماشین گن ، صدای گلوله های توپ به قطرهای مختلف وبسا آوازهای عسکری دیگر ریکارد ها تهیه نموده وبه این طریق متعلمین هوابازی را درس میدهند .

## ماشین‌های دستی برای محافظهٔ مجروحین

برای بهوش آوردن وتنفس دادن مصنوعی اشخاصیکه درمیدان جنگ بهنسبت حملات هوائی بیهوش شده وتنفس آنها بند گردیده باشد آلهٔ دستی اختراع نموده اند . حجم وشکل این ماشین به گراموفون بیشتر شباهت داشته و وزن آن بهسی پاو با لغ میگردد . در داخل آن از ریگ صحرای لیبیا استفاده نموده و آن را طوری ساخته اند که حشرات وحیوانات موذی دران داخل شده نمیتوانند . درهوای گرم این ماشین برای اشخاص بیهوش فوائد زیادی رسانده و اندازهٔ تبخیر وجود آنها را معلوم میکند . فعلا یك تعداد زیادی ازاین ماشین دربین ستههای متعرض و مدافع قوای فضائی توزیع شده است .

## هم ماسك وهم لود سپیکر

یکی ازعلمای هنگری ماسك ضدغازی اختراع نموده است که دارای یك مکروفون میباشد .ولود سپیکری هم به آن



مربوط است.افسر عساکر درهنگام تعرض فضائی وحمله ذریعهٔ غاز زهر دار در حالیکه بچهرهٔ خودماسك مذکوررا پوشیده است میتواند بهعساکر اوامرلازمه صادرنماید . عکس بالاماسك مذکوررابامکروفون ولودسپیکر نشان میدهد.

